


# د جاهلیت مسائل

یو شمیر هغه مهم مسائل چې اسلام پکې
د جاهلیت د خلکو مخالفت کړی

لیکنه: شیخ
محمد بن عبد الوهّاب (رحمه الله)
وفات کال ۱۲۰۶ هـ

# د جاهلیت مسائل

یو شمیر هغه مهم مسائل چې
اسلام پکې د جاهلیت د خلکو مخالفت کړی

لیکنه:

شیخ: محمد بن عبد الوهاب (رحمه اللّه)
وفاة کال 1206 هـ



## مقدمه

الحمدلله والصلاة والسلام على رسول الله، وعلى آله وصحبه ومن والاه، أما بعد:

د جاهلیت[1](ناپوهۍ) ډېرې بیلګې وې، چې د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت نه مخکې په ټولنه کې خپرې وي او اوس هم په خپل اصلي بڼه وجود لري، د پخوانو پیړیو د جاهلیت د خلکو ډېر صفات زمونږ د زمانې په جاهلانو کې موجود دي، بلکې دوی پکې د هغوی څخه یو قدم وړاندې تللي او نور داسې صفات یې پکې زیات کړي چې د پخوانو جاهلانو څخه ډېر ناکاره او بد دي.

د عربي نړۍ طواغیت - چاچې کفر، بدعات او رذالتونه خپاره کړي او د توحید، سنت او غوره اخلاقو سره په جنګ دي- د دې مجرمانو د ځور واکۍ لاندې زمونږ د زمانې په جاهلانو کې دغه بد خصلتونه داسې خپاره شوي، لکه چې په اوچو واخو کې اور څنګه په تیزۍ سره خپرېږي، ځکه خو په هر

(۱) دلته د جاهلیت څخه هغه حالت مراد دی، په کوم چې د اسلام د راتلو څخه مخکې عرب قومونه وو، چېرته چې هغوی الله، رسول او دیني احکام نه پیژندل او په خپلو نسبونو به یې فخر کولو، کبر، لویي او داسې نور ډېر مرضونه پکې موجود وو.[النهایة فی غریب الحدیث و الأثر، لسان العرب، مجمع بحار الأنوار].

مسلمان فرض دي چې د جاهلیت مسائل وپېژني، ځان ترې وساتي او د هغې او د کونکو په اړه يې نورو ته خبرداری ورکړي.

پدې اړه شيخ الاسلام محمد بن عبد الوهاب رَحِمَهُ ٱللَّهُ[۲] د جاهلیت خطرناکې مسئلې په یوه ځانګړې او د ډیرې فائدې والا رساله کې راجمع کړي، چې د علماؤ په مینځ کې**[د جاهلیت مسائل]** په نوم مشهوره ده، هر مسلمان ته پکار دي چې دا رساله ولولي او عمل پرې وکړي.

د لوی الله په فضل مونږ د دغې رسالې تحقیق وکړ او د څو نورو نسخو سره مو کره کتنه وکړه او کوم ځای چې پکې د تعلیق او بیان محتاج وو د هغې وضاحت مو وکړ، د الله عزوجل څخه سوال دی چې په لیکوال يې رحم وکړي او په دغه کوښښ کې د ټولو ګډون والو څخه دا عمل قبول کړي او مسلمانانو ته پرې فائده ورسوي.




(۲) امام مجدد محمد بن عبد الوهاب بن سلیمان بن علی التمیمي النجدي رَحِمَهُ ٱللَّهُ، چې په کال ۱۱۱۵ھ کې د رياض په جنوب کې واقع د العيينه په ښارګوټي کې پيدا شوی او په کال ۱۲۰۶ھ کې وفات شوی، الله دې د هغه روح ته عزت وبخي.

**شيخ الاسلام محمد بن عبد الوهاب وايي:**

دا هغه كارونه دي چې رسول الله ﷺ پکې د جاهلیت د زماني د اهل کتابو او امیانو(نالوسته) خلکو مخالفت کړی، چې باید هر مسلمان یې وپیژني.

**فالضِّد يظهِرُ حُسْنَهُ الضِّدُّ**

**وَبِضدِّها تتميز الأشْياءُ**

ځکه د یو شي خایست د هغه په ضد پیژندو ښکاره کیږي او د مقابل لوري په پیژندو سره شیان واضحه کیږي.

په دغو مسائلو کې ترټولو خطرناکه او سخته خبره په هغه څه د زړه ایمان نه راوړل دي چې په محمدﷺ نازل شوي، چې د دې خطر سره بیا د جاهلیت د خلکو کارونو ته په ښه نظر کتل هم یو ځای کړی شي نو انسان پوره تاواني شي، الله تعالی فرمایي: {وَالَّذِينَ آمَنُوا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوا بِاللَّهِ أُولَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ}[سورة العنكبوت: ٥٢] .

**ترجمه:** او هغه خلک چې په باطل یې ایمان راوړی او په الله یې کفر کړی، دغه خلک همدوی تاوانیان دي.

**[١]مسئله**: د جاهلیت د خلکو عبادت دا وو چې هغوی به نیکان خلک د الله عَزَّوَجَلَّ سره په دعاء او عبادت کې شریکول او پدې

کار سره به یې د دغو نیکانو خلکو شفاعت د اللهعَزَّوَجَلَّ په وړاندې غوښته، ځکه د دغو جاهلانو دا ګمان وو چې د دوی د دغه کار سره د الله او د نیکانو بندګانو مینه ده، لکه چې اللهعَزَّوَجَلَّ فرمايي:{وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لا يَضُرُّهُمْ وَلا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ}[يونس: ١٨]

**ترجمه:** او دوی د الله نه بغیر د هغه څه عبادت کوي چې دوي ته هیڅ ضرر او فائده نشي رسولی، دوی وايي دغه (باطل معبودان) اللهعَزَّوَجَلَّ ته زمونږ سفارشیان دي.

او اللهعَزَّوَجَلَّ فرمايي: {وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى}[الزمر: ٣]

**ترجمه**:او هغه خلک چې د اللهعَزَّوَجَلَّ څخه پرته يې نور معبودان په دوستی نیولي،(او وايي:) مونږ خو د دوی بندګي نه کوو، مګر په پدې خاطر چې اللهعَزَّوَجَلَّ ته مو په درجه کې نږدې کړي.

او دا هغه ترټولو لویه مسئله ده چې رسول اللهصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ پکې د جاهلیت د خلکو مخالفت ښودلی، ځکه هغهصَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ د دې په مقابل کې په عبادت کې اخلاص وړاندې کړ او خلکو ته يې خبر ورکړ چې اخلاص د اللهعَزَّوَجَلَّ هغه دین دی چې ټول

پيغمبران يې پرې راليږلي دي او الله عَزَّوَجَلَّ يواځې هغه عمل قبلوي چې اخلاص پکې وي او دا خبر يې هم ورکړ که چا هغه کارونه وکړل چې د جاهليت خلکو ورته ښه ويلي نو الله عَزَّوَجَلَّ پرې جنت حرام کړی او د ده ځای جهنم دی.

او دا هغه مسئله ده چې خلک پرې دوه ځای کيږي يو يې مسلمان او بل کافر، په همدې مسئله دښمني پيل شوې او د همدې له وجې جهاد د شريعت برخه ګرځيدلی، لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي: {وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ} [الأنفال: ٩٣] .

**ترجمه**: او تاسو د کفارو سره تر هغې وجنګيږي چې هيڅ فتنه پاتې نشي او ټول دين د الله لپاره خاص کړی شي.

[٢]**مسئله**: د جاهليت خلک په خلک دين کې سره بيل بيل دي، الله عزوجل فرمايي: {كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ}[الروم: ٣٢]

**ترجمه**:هره يوه ډله د دين په هغه برخه خوښه ده چې د دوی سره ده.

په همدې ډول د جاهليت والا هم په دنيا کې سره بيل بيل دي او همدا خبره ورته صحيح کار ښکاري.

اسلام د خلکو په یوځای کیدو امر وکړ: {شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحاً وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ} [الشورى: ١٣]

تاسو ته الله عَزَّوَجَلَّ هغه دین رالیږلی چې نوح عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ته یې پرې وصیت کړی وو، هغه چې تاته یې د هغې وحي کړې او هغه چې ابراهیم، موسی او عیسی عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ ته یې پرې وصیت کړی وو؛ چې تاسو دین قایم کړئ او جدایي پکې مه غوره کوئ.

بل ځای الله عَزَّوَجَلَّ فرمایي: {إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعاً لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ} [الأنعام: ١٥٩]

**ترجمه**: هغه خلک چې خپل دین یې جدا جدا کړی او ډلې ډلې شوي، ته د هغوی څخه په هیڅ (تعلق) کې نه یې.

بیا الله عَزَّوَجَلَّ مونږ لدې منع کړي یو چې د کفارو سره ورته والی اختیار کړو، فرمایي: {وَلا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ} [آل عمران: ١٠٥]

**ترجمه**: او تاسو د هغو خلکو پشان مه کیږئ چې ډلې ډلې شوي او د ښکاره دلائلو د راتلو څخه وروسته یې اختلاف وکړل.

په همدې ډول يې په دين كې د اختلاف څخه هم منع كړې يو، فرمايي: {وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعاً وَلا تَفَرَّقُوا}[آل عمران: ۱۰۳]، **ترجمه:** تاسو د خلاصون لپاره د الله عَزَّوَجَلَّ په رسۍ منګولې ولګوئ او جدايي مه اختياروئ.

[۳] **مسئله**: د خپل مشر مخالفت كول او غاړه ورته نه ايښودل

د جاهليت د خلكو ترمينځ ښه كار بلل كيده او د هغه خبره

اوريدل او منل ورته ذلت او سپكاوى ښكاريده.

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسره پدې كې هم اختلاف وكړ او امت ته يې د مشرانو او اميرانو په زياتي د صبر امر يې وكړ، بلكې د اميرانو په خبره اوريدلو، منلو او هغوى لپاره د خير خواهۍ امر يې وكړ، پدې خبره كې يې سختي كړې، وضاحت يې كړى او په مكرر ډول يې كړې.

دا لومړي درې مسائل رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو صحيح حديث كې را يوځاى كړي هم دي، فرمايي:( إِنَّ اللهَ يَرْضَى لَكُمْ ثَلاَثًا: أَنْ تَعْبُدُوهُ، وَلاَ تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا، وَأَنْ تَعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًاوَلَا تَفَرَّقُوا، وَأَنْ تَنَاصَحُوا مَنْ وَلاَّهُ اللهُ أَمْرَكُمْ.)[متفق عليه]

**ترجمه**:الله عَزَّوَجَلَّ ستاسو لپاره درې كارونه خوښوي؛ چې تاسو يې عبادت وكړئ او شرک ورسره ونكړئ، د الله تعالى په

رسۍ منګولې ولګوئ او جدايي اختيار نه کړئ او چې څوک درباندې الله تعالى مشر مقرر کړئ د هغه لپاره خير خواهي ولټوئ.

د انسانانو په دين او دنيا کې هغه وخت کمزوري رامينځ ته شوه چې پدې درې واړو کې يې کمې پيدا کړه ياپې په بعضو کې کمزوري وکړه.

[٤] **مسئله**: د جاهليت د خلکو دين په يو شمير ناوړه اصولو ولاړ وي، چې تر ټولو لوی يې تقليد دی، تقليد د اول نه تر اخيره پورې د ټولو کفارو لويه قاعده ده، الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي: {وَكَذَلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِمْ مُقْتَدُونَ} [الزخرف: ٢٣]

**ترجمه**: او همداشان مونږ ستا څخه مخکې په هيڅ يو کلي کې پيغمبر ندی رالیږلی، مګر د هغه کلي مستو خلکو به ويل: مونږ خپل پلرونه په يو ځانګړي دين موندلي او مونږ د هغوی په نقشقدم روان يو.

بل ځای الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي:{وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَى عَذَابِ السَّعِيرِ}[لقمان: ٢١]

**ترجمه:**کله چې دوی ته وويل شي: د هغه څه تابعداري وکړئ چې الله را نازل کړي، دوی وايي: بلکې مونږ د هغه څه تابعدار يو چې پلرونه مو پرې موندلي، اګر که شيطان دوی لره د ګرم اور عذاب ته بلنه ورکوي.

نو الله ورته دغه وينا وکړه: {قُلْ إِنَّمَا أَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ أَنْ تَقُومُوا لِلَّهِ مَثْنَى وَفُرَادَى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِكُمْ مِنْ جِنَّةٍ ...} [سبأ: ۴۶]

**ترجمه او تفسير**: ورته ووايه:تاسو الله عَزَّوَجَلَّ ته په اخلاص سره ودريږې، د يوبل نه پوښتنه وکړئ يا په خپل ګريوان کې سوچ وکړئ چې آيا ستاسو پدې پيغمبر کې کوم ليونتوب شته؟

بل ځای فرمايي:{اتَّبِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ وَلا تَتَّبِعُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ قَلِيلاً مَا تَذَكَّرُونَ} [الأعراف: ۳].

**ترجمه**: تاسو د هغه څه تابعداري وکړئ چې ستاسو د رب له پلوه تاسو ته راغلی او د هغه نه بغير د نورو دوستانو(معبودانو) تابعداري مه کوئ، ډير کم تاسو پند اخلئ.

**[۵] مسئله**: د جاهليت خلک به په اکثريت ډير دوکه کيدل او د يو شي د سمون په اړه به يې دغه لوی دليل وو، بلکې د يو

شي په بطلان به د هغوی سره لوی دلیل دا وو چې هغه شی به نا اشنا وو یا به یې خلک کم وو.

نو الله عَزَّوَجَلَّ ورته د دې کار ضد راوړ او د قرآن په بیلابیلو ځایونو کې یې د دې وضاحت وکړ.(۳)

[٦] **مسئله**: په مخکنو خلکو دلیل نیول.

لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ فرمایي: {قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُونِ الْأُولَى}[طه:٥١]

**ترجمه**: د مخکنو خلکو څه حالت دی؟.

بل ځای الله فرمایي: {مَا سَمِعْنَا بِهَذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ}[المؤمنون: ٢۴]،

**ترجمه**:مونږ دا خبره د خپلو پلرونو څخه نه ده اوریدلي، چې مخکې تیر شوي دي.

---

(۳) لکه چې الله عزوجل فرمایي:( وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ)[انعام: ۱۱۶] ترجمه: که په ځمکه کې په اکثرو خلکو پسې روان شوې، نو دوی به دې د الله عزوجل د لارې څخه ګمراه کړي،. بل ځای الله عزوجل فرمایي:( وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِنْ عَهْدٍ وَإِنْ وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ)[اعراف:۱۰۲]، ترجمه: او مونږ ونه موندل اکثره د دوي په وعده ولاړ، او مونږ وموندل چې اکثره د دوی فاسقان دي، بل ځای الله عزوجل فرمایي:( وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ)[اعراف: ۱۷۸]، ترجمه: لیکن زیاتره د خلکو څخه نه پوهیږي.

[۷]**مسئله**: په خپل قوت دلیل نیول، که هغه قوت په پوهه کې وي، که په عمل، بادشاهۍ او یا هم په مرتبه کې وي، الله عَزَّوَجَلَّ د دې خبرې رد داسې کوي:{وَلَقَدْ مَكَّنَّاهُمْ فِيمَا إِنْ مَكَّنَّاكُمْ فِيهِ} [الأحقاف:٢٦]،

**ترجمه**: او مونږ دې مخکنو امتونو ته داسې واکمني ورکړې وه چې تاسو ته مو هغه شان نده درکړې، بل ځای الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي: {كَانُوا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ}[البقرة: ٨٩]،

**ترجمه**: دوی به مخکې د کفارو پر خلافت د فتحې غوښتنه کوله، خو کله چې ورته هغه څه راغلل چې دوی پیژنده، نو دوی پرې کفر وکړ، او الله دا وینا: {يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ}[البقرة:١٤٦].

**ترجمه**: دوی دا پیغمبر داسې پیژني لکه خپل بچي چې پیژني.(٤)

(٤) هغه معیار چې د جاهلیت خلک پرې حق د باطل څخه بیلوي دادی چې:د قوت، علم، مرتبې او مالدارۍ والا په کومه طریقه وو، هم هغه ورته سمه ښکاري، اګر که په حقیقت کې هغه باطله لار وي، د جاهلانو سوچ همیشه دا وي چې باید حق همیشه د عزتمندو، زیرکو، مالدارو او مخورو خلکو سره وي او عادي ساده خلک د دې لائق دي چې حق ونه پیژني.

## [۸]مسئله: د يو شي په بطلان دا دليل وړاندې کول چې د دغه شي تابعداران کمزوري دي، لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ يې داسې انځور

د اوسني جاهليت خلک هم انسانان په همدغه تله تلي، وايي: اروپا، امريکا او د خليج طواغيت ځکه په حقه دي چې دوی ځمکه اباده کړه، په علم کې يې پرمختګ وکړ او خپل ملتونه يې د تمدن په لوړ بوتلل او د بادشاهانو ملايان چې ماجستریانې او دکتوراګانې لري او په ټلويزيونونو، سټلايت، او نور پروګرامونو... کې ښکاري دوی د حق په پېژندنه کې ډېر حق لري.
ليکن الله عزوجل دغه قاعده ډېره پخوا د خپل کتاب په ډېرو آيتونو کې باطله کړې؛ الله عزوجل د مخکنو امتونو په اړه داسې فرمايي:( أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ *إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ*الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ)[الفجر]، ترجمه: آيا ته نه ګورې چې ستا رب په عاديانو څه وکړل؟ چې ارم ، خاوندان د ستنو وو، هغه خلک چې د هغوی په څېر په ښارونو کې نه وو پيدا شوي.
همدا شان هغه آيتونه چې مصنف رحمه الله په دليل کې وړاندې کړي دي، مقصد يې دادی چې اهل کتاب په پوره توګه پدې خبره پوه وو چې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ او پيغمبري يې حقه ده، همدا ډول مخکني امتونه په بدن، علم، زيرکتيا او مالدارۍ... کې د اوسنو کفارو څخه ډېر زيات وو، نو آيا دغه شيان د دې دليل کيدي شي چې هغوی دې په حق وي؟! او آيا د هغوی علم، قوت او مالدارۍ هغوی ته د الله عزوجل په مقابل کې کومه ګټه ورسوله؟! الله عزوجل فرمايي: (وَلَقَدْ مَكَّنَّاهُمْ فِيمَا إِنْ مَكَّنَّاكُمْ فِيهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَارًا وَأَفْئِدَةً فَمَا أَغْنَى عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَا أَبْصَارُهُمْ وَلَا أَفْئِدَتُهُمْ مِنْ شَيْءٍ إِذْ كَانُوا يَجْحَدُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَحَاقَ بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ)[احقاف:۲۶] ترجمه: يقينا مونږ هغوی ته داسې واکمني ورکړې وه چې تاسو ته مو نده درکړې، هغوی له مونږ غوږونه، سترګې او زړونه پيدا کړي وو، ليکن د غو غوږونو، سترګو او زړونو دوی ته کومه ګټه ونه رسوله، ځکه دوی د الله د آيتونو څخه انکار کولو، نو دوی دهغه څه سره پيوسته شول چې دوی ورپورې ټوقې کولې.

وړاندې کوي: {أَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْأَرْذَلُونَ}[الشعراء: ١١١]، **ترجمه**: آیا مونږ ستا خبره ومنو او ستا ملګري ذلیله (کمزوري) خلک دي، او د الله عَزَّوَجَلَّ دغه وینا: {أَهَؤُلاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنَا}[الأنعام: ٥٣].

**ترجمه**: آیا په مونږ کې یواځې په دغو خلکو الله احسان کړی؟!، نو الله عَزَّوَجَلَّ پرې پدې وینا رد وکړ چې فرمايي:{أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ}[الأنعام: ٥٣].

**ترجمه**: آیا الله عزوجل په خپلو شکر ګذارو بندګانو ډېر پوهه ندی؟

[٩] **مسئله**: په فاسقانو علماؤ او ناپوهه عابدانو پسې تلل، الله عَزَّوَجَلَّ یې حالت داسې وړاندې کړ:{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيراً مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ}[التوبة: ٣٤].

**ترجمه:** ای د ایمان والاو! یقینا ډېر د ملایانو او عابدانو څخه د خلکو مالونه په باطله خوري او د الله عَزَّوَجَلَّ د لارې څخه خلک منع کوي، او دا وینا: {لا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ

وَلا تَتَّبِعُوا أَهْوَاءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا مِنْ قَبْلُ وَأَضَلُّوا كَثِيراً وَضَلُّوا عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ}[المائدة: ٧٧].

**ترجمه او تفسیر**: تاسو د حق په تابعدارۍ کې د حد نه زياتی مه کوئ، او د ګمراه شیخانو مه تابع کیږئ چې له مخکې ګمراه دي او نور خلک يې هم ګمراه کړل او سمه لار يې خطا کړې.

[**١٠**]**مسئله**: د دین د بطلان لپاره دا لامل وړاندې کول چې تابعدار يې کم او عقلي کمزورۍ لري، لکه د الله عَزَّوَجَلَّ دا وینا: {بَادِيَ الرَّأْيِ}[(٥)] [هود: ٢٧].

(٥) دا مسئله په استدلال کې د اتمې مسئلې په څیر ده، ځکه پدې دواړو مسئلو کې د پیغمبرانو خبره نه منونکو د پیغمبرانو د دعوت د بطلان لپاره دا دلیل وړاندې کړی چې د دې دعوت تابعداران کمزوري، او د علم او عرفان څخه محرومه خلک دي، لکه چې نوح عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ته خپل قوم ویلي وو:( وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ وَمَا نَرَى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ)[هود: ٢٧]، ترجمه: مونږ نه ګورو ستا تابعداران ، مګر هغه څوک چې په مونږ کې رذیل او د کمزورې رای خاوندان دي، مونږ په خپل ځان ستاسو کوم فضیلت نه ګورو، بلکې مونږ په تاسو د درواغژنو ګمان کوو، نو دغه کفار د پیغمبرانو د تابعدارۍ څخه پدې دلیل منع شول چې د پیغمبر تابعدار ورته لاندې درجې والا، سپک او ذلیله خلک ښکاره شول! چې دغه لقبونه يې د کمزورو او فقیرانو په اړه استعمال کړل، د کفارو دا وینا چې(بَادِيَ الرَّأْيِ) یعنې دغه خلک بې فکره ستا تابع شوي، بلکې ستا په دعوت ورکولو فورا ستا ملګري شوي، نو د مشرکینو ګمان دا دی چې د

**ترجمه**: دوی د عقل څخه کمزوري دي، بې فکره ستا تابعداري کوي.

[۱۱]**مسئله**: په فاسد قیاس دلیل نیول، لکه چې وايي:{إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا}[إبراهيم: ١٠].

**ترجمه**: تاسو نه يې مګر زمونږ په شان انسانان.

[۱۲]**مسئله**: د صحیح قیاس څخه انکار کول.(٦)

---

پيغمبرانو تابعدار عقل نه لري او لر لید ورسره نشته! خو حقیقت دادی د پيغمبرانو تابعدار په ټولو خلکو کې عقلمند، د درنې خبرې والا، ښه اخلاقو والا او د خوږې لارې والا وي(رضوان الله علیهم اجمعین)، د پخوانو پیړیو جاهلیت د دې زمانې د جاهلیت سره ډیر زیات ورته والی لري، کوم خلک چې په مجاهدینو( د پيغمبرانو په تابعدارو) پورې ټوکې مسخرې کوي او د هغوي په هکله وايي چې دوی کمزوري، د کم عقل خاوندان دي، کشران دي، ناکام دي، د حالاتو په واقعیت نه پوهیږي او د دوی کار د دین ورانول دي، او داسې نورې خبرې...ولاحول ولا قوة الا بالله.

(٦) د جاهلیت د خلکو د صفاتو څخه دا خبره هم ده، چې دوی پر فاسدو قیاسونو اعتماد کوي او د صحیحو قیاسونو څخه انکار کوي، چې په هغې کې بعضې بیلګې مصنف ذکر کړې دي، لکه د پيغمبر په بشریت د هغه په نا حقه استدلال کول، نو الله عزوجل یې دغه فاسد استدلال په قرآن کریم کې په ډیرو ځایونو کې باطل کړ، لکه د الله عزوجل دا وینا:( قُلْ لَوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَائِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِنَ السَّمَاءِ مَلَكًا رَسُولًا)[اسراء:٩٥] ترجمه: ته ورته ووایه: که چیرته په زمکه کې ملائک د پيغمبرانو په توګه مقرر وی او په ارام سره یې دلته تګ راتګ کولی نو الله عزوجل به پرې د اسمان څخه بل ملائک د وحي راوړلو لپاره مقرر کړی وی، نو د حکمت او واقع تقاضا داده چې انسانانو ته باید انسان پيغمبر ولیږل شي، ترڅو یوبل سره په خبره پوه شي او د هغه پيغام ویږني،

او د دې او مخکنو خبرو لپاره جمعه کونکې خبره دا ده چې: دا خلک په جامع او فارق پوه ندي.(۷)

[۱۳]**مسئله**: د علماؤ او نیکانو خلکو په حق کې [غُلُوُّ] د حد نه زیاتی کول، لکه د الله تعالی دا وینا: {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ}[النساء: ۱۷۱].

---

بلکې د الله عزوجل دا لوی رحم دی چې رسول یې د انسانانو څخه ګرځولی، که چیرته ملایک وی نو خبره اخیستل او ځان پوه کول به ترې ګران وی، نو (لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ)[آل عمران: ۱۶۴]، ترجمه: الله عزوجل پر مؤمنانو احسان کړی چې پدوی کې یې د دوی د جنس څخه پیغمبر رالیږلی، بالمقابل هغه صحیح قیاس چې جاهلان ترې انکار کوي دادی چې انسانانو ته باید انسان پیغمبر او ملائکو ته باید ملائک استازی ولیږل شي، او فاسد قیاس د دې بالعکس دی، امام ابن قیم الجوزیه وایي: د هر بدعت او فاسد قیاس بنیاد فاسد قیاس وي او پدې عالم(نړۍ) کې چې کوم فساد او خرابي رامنځ ته شوې دا ټوله د غلت او فاسد قیاس له امله ده، بلکې په دنیا او آخرت کې د شر بنیاد فاسد قیاس دی.[اعلام الموقعین]

(۷) قیاس دې ته وایي: یوه فرعه په اصل پورې په حکم کې د یو جامع علت د موجودیت له امله پیوسته کول.

کله چې د دې تعریف د ارکانو څخه یو رکن هم نشت شي نو قیاس فاسد بلل کیږي، مصنف رحمه الله دلته دا خبره ذکر کوي چې دا خلک ځکه صحیح او فاسد قیاس نه پیژني چې دوی هغه (جامع) علت نه پیژني چې په هغې قیاس ولاړ وي او همدا ډول هغه (فارق) نه پیژني چې د هغې په موجودیت کې قیاس نه صحیح کیږي، په بل عبارت دا جاهلان د حکم په علت په صحیح توګه پوه ندي، ځکه دا خبره ضروري ده چې د اصل د حکم علت به په فرعه کې موجود وي، که چیرته نشت شي نو بیا قیاس صحیح ندی.

**ترجمه**: ای د کتاب خاوندانو! تاسو په خپل دین کې د حد نه زیاتی مه کوئ، او تاسو په الله عزوجل مه وایئ مګر حق وینا.

[١٤]**مسئله**: مخکې چې څه تیر شول دغه ټول په یوه قاعده بناء دي، چې هغې ته:«نفي او اثبات»[٨] ویل کیږي، چې پدې سره دوی د خواهشاتو او ګمانونو تابعداري کوي او هغه څه چې پیغمبرانو راوړي د هغې تکذیب کوي.

[١٥]**مسئله**: د ناپوهی په نوم د هغه څه نه معذرت کول چې الله ورکړي دي، الله عزوجل فرمايي: {وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ}[البقرة: ٨٨].

**ترجمه**: او دوی وایي: زمونږ زړونه په پردو کې دي، او دا وینا:{يَا شُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيراً مِمَّا تَقُولُ}[هود: ٩١].

**ترجمه**: ای شعیبه مونږ په ډیر هغه څه نه پوهیږو چې ته يې وايي.

---

(٨) مقصد دا چې دوی هغه څه ثابتوي چې الله عزوجل نفي کړي وی او هغه څه نفي کوي چې الله يې اثبات کړی وي، د بیلګې په توګه: الله عزوجل شرک نفي کړی او توحید يې ثابت کړی، دوی د دې بالعکس کارکوي، شرک کوي او توحید نفي کوي، الله عزوجل حلال ثابت کړي او حرام يې نفي کړي، دوی راغلل حلال يې نفي کړل او حرام يې اثبات کړل.

نو الله عزوجل دغه جاهلان دروغژن کړل چې په زړونو یې پردې او نه ناپوهي ده، بلکې د کفر په وجه د دوي په زړونو مهر وهل شوی دی.

[١٦]**مسئله**: دوی ته د الله عزوجل لخوا د ورکړل شوي دین په بدل کې دوی د سحر(جادو) کتابونه واخیستل، لکه چې الله عزوجل یې داسې بیانوي: {وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ كِتَابَ اللَّهِ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لا يَعْلَمُونَ وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ}[البقره:١٠٢،١٠١].

**ترجمه**: او کله چې دوی ته د الله عَزَّوَجَلَّ لخوا داسې رسول راشي چې تصدیق کوي د هغه څه چې د دوی سره دي، نو پدوی کې د کتاب والاو څخه یوې ډلې د الله کتاب شاته داسې گذار کړ لکه دوی چې نه پوهیږي،او د هغه څه تابع شول چې شیطانانو د سلیمان عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ په بادشاهۍ کې لوستل او سلیمان عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ کفر نه وو کړی، لیکن شیطانانو کفر کړی وو، خلکو ته به یې د سحر ښوونه کوله.

[۱۷]**مسئله**: د خپل باطل دین نسبت پیغمبرانو ته کول.

لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ فرمایي:{وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ} [البقرة: ۱۰۲].

**ترجمه**: او سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ کفر نه وو کړی، او دا وینا: {مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيّاً وَلا نَصْرَانِيّاً}[آل عمران: ۶۷].

**ترجمه**:او ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ یهودي او یا نصراني نه وو.

[۱۸]**مسئله**: د ځان منسوبولو او عمل ترمنځ تضاد.

ځکه دوی ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ځان منسوبوي لیکن د هغه تابعداري نه کوي.(۹)

[۱۹]**مسئله**: د نیکانو خلکو د بعضې تابعدارو د غلتو کارونو له امله د دغو نیکانو بدې بیانول، لکه چې یهودو به د

(۹) لکه نن ورځ د آل سلول ملایان، چې محمد بن عبد الوهاب رَحِمَهُ اللَّهُ او د هغه د لمسو رَحِمَهُمُ اللَّهُ دعوت ته ځان منسوبوي، لیکن په طاغوت کفر او پرخلاف یې جهاد نه کوی، بلکې د صلیبیانو سره دوستې کوي او د مجاهدینو پر خلاف جنګ کوي، پدې کارکې دوی د روافضو په څیر دي چې علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ځان منسوبوي او د حسین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د محبت دعوا کوي، لیکن په عقیده، عبادت او اخلاقو کې د دواړو تابعداري نه کوي، بلکې په پوره توګه بالعکس د هغوی مخالف کارونه کوي.

عیسی عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ بدي بیانوله او یهود او نصارا دواړو به د محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بدي بیانوله.(۱۰)

[۲۰]**مسئله**: د جادو ګرو په خارق العاده کارونو دا عقیده لرل چې دا د نیکانو خلکو کرامتونه دي، بلکې دغه جادو پیغمبرانو ته منسوبول، لکه سلیمان عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ته چې یې منسوب کړی وو.(۱۱)

---

(۱۰) د جاهلانو طریقه دا ده چې تابعدارانو ته ګوري، کله چې هغوی یو غلت کاروکړي، نو دوی یې د هغوی متبوع(امام، پیغمبر او مشر) ته منسوب کړي، ترڅو یې دغه کار د دغه نیک انسان د تابعدارۍ نه کولو لپاره دلیل پیدا کړي او بعینه دا کار به یهودو د عیسی عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ سره کولو، کله چې هغوی وکتل چې بعضې نصارا ګمراه شول او عیسی عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ته یو له درېو خدایانو وایي، یا وایي: عیسی په خپله الله عَزَّوَجَلَّ دي، یا د هغه ځوی دی(تعالی الله من ذلک)، په همدې ډول یهودو او نصارا دواړو چې کله د دې امت ګمراه خلک، لکه ملنګان، روافض، چیغې وهونکې ځان عذابونکي... او داسې نور ولیدل نو په محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عیب ویل پیل کړ او د هغه د رسالت بدي یې وویله.

(۱۱) خارق العاده کارونه هغې ته وایي چې د عادت مخالف وي یعنې په عادي توګه دغه ډول کار نه کیږي(لکه د مار څخه امسا جوړیدل او داسې نور)، دغه شان کار چې د کوم نه نبي څخه ثابت وي معجزه بلل کیږي، لیکن د پیغمبرانو څخه د علاوه خلکو حال ته به کتلی شي، که چیرته داسې انسان چې یو خارق العاده کار ترې صادر شو یو نیک انسان وو، نو دې ته کرامت ویل کیږي چې الله یې په خپلو دوستانو پیرزو کوي او که چیرته دغه انسان فاجر او مشرک وو، نو بیا دا جادو، منترونه او دوکې دي چې شیطان یې خپلو دوستانو ته ورکوي، خو پدې خبره هم ځان پوه کول پکار دي چې د کرامت او جادو په جنس کې لوی توپیر موجود دی، د لا زیاتو معلوماتو لپاره د شیخ الاسلام ابن تیمیه رَحِمَهُ ٱللَّهُ کتاب[النبوات] وګورئ.

[۲۱]**مسئله**: په شپیلو او لاس پړکولو عبادت کول.(۱۲)

[۲۲]**مسئله**: د خپل دین څخه یې ساعت تیری او لوبې جوړې کړي وي.

[۲۳]**مسئله**: په ورکړل شوې دنیا دوکه شوي دي نو داسې ګمان کوي چې دا د الله عزوجل پیرزونه ده چې د هغه په رضا

---

د جاهلیت خلکو به د جادو ګرو منترونه، د کاهنانو دجل او د مشرکانو ګندونه(ناولتاوې) د اولیاؤ کرامتونه بلل او بیا به یو قدم وړاندې تلل او دغه کارونه به یې د هغه سړي د نیکۍ علامې ګرځولې د چا څخه چې به دغه کار صادر شو، دا لا څه چې خوړ نبي سلیمان عَلَیۡهِ ٱلسَّلَامُ ته یې هم دغه شیان منسوب کړل، پداسې وخت کې چې دغه کارونه کفر دی او الله عزوجل ترې خپل پیغمبران پاک کړي دي، لکه چې الله فرمایي:(وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ).

(۱۲) الله عزوجل فرمایي: {وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً} [الأنفال: ۳۵]، ترجمه: او نه وو د بیت الله په خوا کې د دوی لمونځ مګر شپیلي او لاس پړکونه، نو وڅکئ تاسو عذاب په سبب د هغه کفر چې تاسو کولو.

دلته د لمانځه نه مراد، دعاء یا نور داسې عبادتونه چې دوی یې به کول او د لمانځه نوم به یې ورکولو، چې دغه شان کارونه هیڅ کله عبادت نشي کیدلی بلکې جاهلیت بلل کیږي، د دې په څېر پدې زمانه کې، د صوفیانو شپیلي او لاس پړکونه ده چې دوی ورته د الله عبادت او د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ د تابعدارۍ نوم ورکوي.

دلالت کوي، لکه د دوی دا وینا:{نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالاً وَأَوْلاداً وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ}[سبأ: ٣٥].

**ترجمه**: زمونږ مالونه او بچي ډیر دي او مونږ ته به عذاب نه راکول کیږي.

[٢٤]**مسئله**: حق پدې خاطر نه منل چې کمزوري خلک ترې حق منلو ته مخکې شوي دي او دغه کار د تکبر او لویی له وجې کول، چې په رد کې یې الله عَزَّوَجَلَّ دا وینا نازله کړه: {وَلا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ ... }[الأنعام: ٥٢].

**ترجمه**: او ته مه شړه هغه کسان چې خپل رب رابلي...

[٢٥]**مسئله**: د حق د بطلان لپاره دا دلیل وړاندې کول چې کمزوري خلک لدوی څخه ورته مخکې شوي دي، لکه د الله عَزَّوَجَلَّ دا وینا:{لَوْ كَانَ خَيْراً مَا سَبَقُونَا إِلَيْهِ}[الأحقاف: ١١].

**ترجمه**: که دا خیر وی نو دوی به ورته زمونږ څخه نه وی مخکې شوي.

[٢٦]**مسئله**: کله چې د الله عزوجل په کتاب ښه پوه شي، تحریفونه پکې پیل کړي، سره لدې چې دوی په خپله خطایي پوهیږي.

[**۲۷**]**مسئله**: باطل کتابونه لیکل او الله ته د هغې نسبت کول، لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي:{فَوَيْلٌ لِلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ ثُمَّ يَقُولُونَ هَذَا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ}[البقرة: ۷۹].

**ترجمه**: نو هغو خلکو له تباهي ده چې په خپل لاس کتاب ليکي او بيا وايي: دا د الله عزوجل له پلوه دی.

[**۲۸**]**مسئله**: دوی یواځې هغه حق قبلوي چې د دوی د ډلې سره وي، لکه د الله عَزَّوَجَلَّ دغه وينا: {قَالُوا نُؤْمِنُ بِمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا}[البقرة: ۹۱].

**ترجمه**:دوی وايي: مونږ په هغه څه ايمان راوړو چې په مونږ ته راغلي دي.

[**۲۹**]**مسئله**: دوی د دې باوجود بيا په هغه څه نه پوهيږي چې د دوی ډله يې وايي، لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ يې خبر ورکړی: {قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُونَ أَنْبِيَاءَ اللَّهِ مِنْ قَبْلُ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ}[البقرة: ۹۱].

**ترجمه**: ته ورته ووايه: تاسو مخکې پيغمبران ولې وژل؟ که تاسو مؤمنان يئ.

[**۳۰**]**مسئله**:دا د الله عَزَّوَجَلَّ د عجيبه نښانو څخه ده! چې کله دوی د يوځای کيدو په اړه د الله تعالی امر ونه مانه او ډلبازي

يې غوره کړه- سره لدې چې الله ترې منع کړې وه- نو الله عزوجل هره ډله په خپله برخه دین خوشحاله کړه.

[۳۱]**مسئله**: او دا هم د الله عَزَّوَجَلَّ د ډیرو عجیبه نښانو څخه ده! چې د جاهلیت والا د هغه چا سره بې حده زیاته دښمني لري چې الله عَزَّوَجَلَّ ته ځان منسوبوي او د کفارو د دین سره بې حده زیات محبت لري-هغه کفار چې د دوی او هم یې د پیغمبر او ډلې دښمنان دي- لکه یهودو چې د محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دښمني کوله، سره لدې چې هغه ورته د موسی عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ دین راوړ ،بلکې د هغې په مقابل کې یې د سحر کتابونه غوره کړل، حال دا چې هغه د فرعون دین وو.

[۳۲]**مسئله**: چې کله حق د هغه چا سره وي چې د دوی خوښ نه وي نو کفر پرې، لکه چې الله عَزَّوَجَلَّ فرمایي: {وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَى عَلَى شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَى لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَى شَيْءٍ}[البقرة: ۱۱۳].

**ترجمه**: یهود وايي: نصارا په هیڅ (حق دین) ندي، او نصارا وايي: یهود په هیڅ (حق دین) ندي.

[۳۳]**مسئله**: د هغه څه نه انکار کول چې دوی د دین په توګه یو ځل منلي وي، لکه چې د حج په هکله دوی کړي وو(۱۳) الله عَزَّوَجَلَّ فرمايي: {وَمَنْ يَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ إِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهُ}[البقرة: ۱۳۰].

(۱۳) لکه یهودو چې به کول؛ هغوی به دا دعوا کوله چې مونږ د ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ په دین یو، لکن کعبه به یې د قبلې او حج به یې دعبادت په توګه نه مانه، همدا ډول د مکې د مشرکینو کړنه؛ ځان به یې ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته منسوبوو او دا به یې منله چې حج د هغه د عبادتونو څخه یو دی، لکن د نورو خلکو سره به یو ځای په عرفه نه ودریدل، بلکې په مزدلفه کې به ولاړوو، ترڅو یې د نورو خلکو سره توپیر راشي.

په همدغه ډول زمونږ د زمانې جاهلان همدغه کار کوي؛ ډیر خلک دي چې ځان اسلام ته منسوبوي لیکن دا نه مني چې ډیموکراسي کفر دی، دا لا څه چې دفاع ترې هم کوي او ډیموکراسي د اسلام د ملاتیر بولي او د شورى نوم ورکوي، داسې خلک هم شته چې ځان ته مسلمان وايي، خو په کفارو پسې د هغوی ملکونو ته دجهاد لپاره تللو نه انکار کوي او وايي چې جهاد خو یوائې د دفاع لپاره روا کړي شوی دی، ډیر خلک به ته ګورې چې د لمانځه به هم پابند وي لکن فلمونه به ګوري، ساز سرود ته به غوږ نیسې، که ورته څوک نصیحت وکړي، نو وايي: دا خو مباح دي او چا ویلي چې دا کارونه حرام دي؟!!!(الله دې مونږ د داسې حال څخه وساتي).

**ترجمه**: او بې رغبته کیږي نه د دین د ابراهیمعَلَيۡهِٱلسَّلَامُ څخه مګر هغه څوک چې ځان کم عقل کړي.

[۳٤]**مسئله**: هره ډله دا دعوا لري چې مونږ د اور څخه خلاص یو، اللهعَزَّوَجَلَّ د دوی دغه دعوا دروغ وبلله او ویې فرمایل:{قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ}[البقرة: ۱۱۱].

**ترجمه**: ورته ووایه: دلیل راوړئ که چیرته تاسو ریښتونې یاستئ، بیا یې ورته سمه لاره وښودله: {بَلَى مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ}[البقرة: ۱۱۲].

**ترجمه**: بلکې داسې نده! چاچې خپل مخ(ځان) تسلیم کړ اللهعَزَّوَجَلَّ ته پداسې حال کې چا دا نیکو کار وو.

[۳۵]**مسئله**: د عبادت په توګه خپل عورت ښکاره کول[١٤]، لکه چې الله عزوجل فرمایي: {وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا}[الأعراف: ۲۸].

---

(١٤) ابن کثیررَحِمَهُٱللَّهُ په خپل تفسیر کې وایي: مجاهدرَحِمَهُٱللَّهُ ویلي: مشرکانو به دبیت الله څخه طواف پداسې حال کې کولو چې بربنډ به وو، ویل به یې: مونږ پداسې حالت کې طواف کوو، لکه چې د مور څخه پیدا وو، ښځو به په خپله شرمګاه یوه ټوټه یا بل څخه کیښودل او ویل به یې: نن ورځ به ترې بعضې یا ټول ښکاره کیږي... خو څه چې ترې ښکاره شو نو ورته د چا نظر حلال نه ګڼم، نو

